# هیواد
ورځپانه


اسلامي امارت:

## سعودي کې د فلسطینیانو دولت جوړول ناشوني او د حاکمیت نقض دی

د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت د یوې اعلامیې په خپرولو سره د نتانیاهو لورې د خپلواک فلسطیني دولت له جوړېدو انکار او پر دې ټینګار، چې فلسطینیان دې د سعودي عربستان پر قلمرو خپل دولت جوړ کړي، په کلکو ټکو غندلی.یاد وزارت ویلي: (( د اسرائیلي اشغالګر رژیم د مشر بنیامین نتنیاهو له لورې د خپلواک فلسطیني دولت له جوړېدو انکار او پر دې ټینګار، چې فلسطینیان دې د سعودي عربستان پر قلمرو خپل دولت جوړ کړي، په کلکو ټکو غندي او دا چاره ناشوني او له منل شویو حقیقتونو سره جوت ټکر او د سعودي عربستان د حاکمیت نقض بولي.))په دې اعلامیه کې لیکل شوي: (( د نتنیاهو دا دول څرګندونې د نړۍ منل شویو نورمونو ته سپکاوی او د فلسطینیانو له مشروع حق څخه ښکاره سرغړونه ده.))د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت ټینګار ۳مخ


مؤسس: عبدالرووف بینوا | د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز | سه شنبه د شعبان المعظم ۱۲مه ۱٤٤٦ق کال | د سلواغې ۲۳ مه ۱٤۰۳ ل کال | د فبروري ۱۱ مه ۲۰۲۵م کال | خصوصي ګڼه ۵٤۱مه | پرله‌پسې ګڼه ۶۳۱ مه ، اتمه دوره


## د بهرنیو چارو وزیر د ناروې له شارژدافیر سره د دیپلوماتیکو اړیکو پر لا پراختیا خبرې وکړې



په کابل کې د بهرنیو چارو وزیر مولوي امیرخان متقي سره د ناروې شارژدافیر پیر البرت الساس لیدنه وکړه.په دې لیدنه کې دواړو لوریو د سیاسي، اقتصادي او بشري موضوعاتو په اړه خبرې وکړې.د بهرنیو چارو وزیر د خپلو خبرو په ترڅ کې په افغانستان کې د رامنځته شویو فرصتونو یادونه وکړه او څرګنده یې کړه، چې له نړیوالو سره مثبت تعامل او پر متقابل احترام ولاړو اړیکو ته هرکلی وایي. نوموړي زیاته کړه، د سیمې او نړۍ هېوادونه دې له افغانانو سره د اقتصادي ودې او پراختیايي چارو په برخه کې ۳مخ

د اقتصاد وزارت:

## اسلامي امارت د بېوزلۍ کمولو په موخه هیواد کې لویې بنسټیزې پروژې پیل کړې

د اقتصاد وزارت مسلکي مرستیال عبداللطیف نظري د افغانستان اسلامي امارت د بېوزلۍ کمولو او په هېواد کې




په هېواد کې د بېوزلۍ د زیاتوالي په اړه د خوړو نړیوال پروګرام راپور ردوي او وایي؛ د کاري زمینې د رامنځته کولو په پار لویې بنسټیزې پروژې پلي کړې دي او یو ۳مخ

## د بخش آباد بند د تونلونو د کانکرېټ چارې ۹۰ سلنه بشپړې شوې

د فراه د والي ویاند مولوي عبدالمالک اسامه باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي ،چې د بخش اباد بند د رغولو چارې په لوړ کیفیت او په چټکۍ سره رواني دي.د نوموړي په وینا: د یاد بند د اوبو انحرافي تونل کې د شارکرېټ او له تونلونو بهر د کانکرېټ چارې ۹۰ سلنه او د اوبو د دوهم انحرافي تونل د وایرمېش چارې ۱۰۰ سلنه بشپړې شوې دي. ۳مخ



د فراه والي مولوي غوث‌الدین رهبر او نورو سیمه ییزو مسؤلینو د بخش اباد بند له رغنیزو چارو لیدنه کړې ده.

## د نوي کابل پروژې د لومړي پړاو پراختیايي طرحه تأیید شوه

د کور او ښار جوړولو وزارت د نوي کابل پروژې د لومړي فاز د انکشافي برخې پلان تأیید کړی دی.نوي کابل چې د افغانستان له لویو ودانیزو پروژو ګڼل کېږي، ټاکل شوې ده، په ۳۷۰ زره جریبه ځمکه کې جوړ شي.د کور او ښارجوړولو وزارت ویاند: وایي دا مهال د نوي کابل د لومړي فاز پراختیايي طرحه تأیید شوې او د دغه ښارګوټي د پراختیا هڅې هم رواني دي.د کور او ښارجوړونې وزارت ویاند، محمد کمال افغان زیاتوي: تمه ده چې د دغه پراختیايي پلان له تأیید کېدو وروسته به د لومړي فاز چارې هم پرمخ یوړل شي، په ځانګړې توګه د الف پارسل، ځکه د الف ۳مخ



## ننګرهار کې ۲۲۳ تنو ته د کار زمینه برابره شوه

د ننګرهار ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا ریاست مسئولین وایي، چې د دې ولایت په مومندرې ولسوالۍ کې ۲۲۳ کسانو ته د کار زمینه برابره شوې ده.د یاد ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا رئیس مولوي قسمت الله مبارز باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د دې ولایت د مومندرې ولسوالۍ په بېلابېلو سیمو کې د کانالونو د پاککارۍ، د سړکونو جوړولو او بیا رغولو په برخو کې ۲۲۳ کسانو ته د کار زمینه برابره شوې ده.سرچینې زیاته کړې، چې اوسمهال د یاد ولایت ۳مخ


۲ امریکا باید له افغانستان سره د تعامل لاره غوره کړي!

۲ له شیطان سره ملګرتیا څه ده؟

۲ صفا کاران شاروالی باید کارهای شانرا در وقت معین اجراء کنند


## پنجشیر کې د صنعتي ښارګوټي لپاره ۱۰۰۰ جریبه ځمکه ځانګړې شوه

د پنجشیر ولایت کې د عالیقدرامیرالمؤمنین (حفظه الله ) د ځانګړي فرمان په اساس د صنعتي ښارګوټي لپاره زر جریبه ځمکه ځانګړې شوه.د یاد ولایت د صنعت او سوداګرۍ رئیس مولوي امین الحق ماثوري باختراطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله ) د ځانګړي فرمان له مخې، د یاد ولایت په مرکز بازارک او ۷ ولسوالیو کې د صنعتي ښارګوټي لپاره د ځمکې د تثبیت لپاره اسناد بشپړ ۳مخ

## د بغلان د ډبرو سکرو د استخراج کچه ۱۶۵ ټنو ته لوړه شوې

په بغلان کې د طبیعي زېرمو له کانونو څخه د ډبرو سکرو د کیندنې کچه د تېر په پرتله لوړه شوې.د شمال زون د ډبرو سکرو د دولتي شرکت ویاند عزت الله حماس وایي: د بغلان له کانونو څخه هره ورځ نږدې ۱۶۵ ټنه سکاره استخراجېږي چې د تېر په پرتله ۱۳،۷۹ سلنه زیاتوالي ښیي. حماس زیاتوي، د روان لمریز کال په لومړیو شپږو میاشتو کې د ډبرو سکرو د استخراج له درکه څه د پاسه ۲ میلیارده افغانۍ عواید ترلاسه شوي دي.(( د بغلان د ډبرو سکرو له کانونو نسبت یې د کېندنې چارو کچه لوړه شوې ده. د روان ۱۴۰۳لمریز



څخه هره ورځ شاوخوا ۱۶۵ ټنه سکاره استخراجېږي او د تېر په کال په تېرو شپږو میاشتو کې ۲ میلیارده او ۳۸۱ زره ۳مخ

## غزني او بلخ کې د ۲ څېړنیزو فارمونو د جوړولو تړون لاسلیک شو

د چاپېریال ساتنې ملي اداره د اقلیمي بدلون د ناوړه اغېزو د کمولو او زرغونو سیمو د زیاتوالي په موخه په غزني او بلخ ولایتونو کې د مثمرو او غیر مثمرو نیالګیو د روزنې دوه څېړنیز فارمونه جوړوي. د یادو فارمونو د جوړولو چارې تیم افغان خصوصي رغنیز شرکت په غاړه واخیستې، چې د څه کم شپږ میلیونه افغانیو په لګښت سره به یې تخنیکي چارې په یوه میاشت کې بشپړې شي. د چاپېریال ساتنې ملي اداري عمومي رئیس مولوي مطیع الحق مخلص د دغې پروژې د تړون لاسلیکولو پر مهال وویل، چې په پام کې لري



نږدې راتلونکي کې د هېواد په ۱۵ نورو ولایتونو کې هم دغه شان پروژې پلي کړي. ده زیاته کړه، چې افغانستان د چاپېریال ساتنې په برخه کې له ګڼو ستونزو سره مخ دی، چې په خبره یې د اقلیمي بدلون له امله د متضررو ۳مخ

## شیخ زاید پوهنتون کې د ۵ پروژو چارې پیل شوې

د خوست په شیخ زاید پوهنتون کې د څه باندې ۱.۳ میلیونو افغانیو په لګښت د پنځو پروژو چارې پیل شوې دي.د یاد پوهنتون د عامه اړیکو او مطبوعاتو آمر عبدالرحیم هاتف باختراطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د محصلینو د عملي زده کړو په موخه د دغه پوهنتون په څېړنیز ۳مخ



## د برښنا رسولو نوې طرحه کې به د صنعتي فابریکو ستونزه حل شي

کابل کې د ښار صنایعو اړوند صنعتي کارخونو مسئولینو د افغانستان برښنا شرکت له عمومي اجرائیوي رئیس ډاکټر عبدالباري عمر سره په خپل کاري دفتر کې لیدنه کړې او د برښنا اړوند ودانیزونه او ورسره شریک کړې دي.په دې لیدنه کې ډاکټر عبدالباري عمر د یادو صنعتي کارخونو مسئولینو ته ډاډ ورکړی، چې د افغانستان برښنا شرکت لپاره هېواد کې د صنعتي تولیدي کارخونو لپاره د ډاډمنې برښنا وېش مهم لومړیتوب دی.نوموړي زیاته کړې؛ د ډاډمنې برښنا چمتو کولو ته بې پر نوې طرحې ۳مخ






# امریکا باید له افغانستان سره د تعامل لاره غوره کړي!

په نړیوال سیاست کې د تعامل او تقابل ترمنځ انتخاب د اوږدمهالو ستراتېژیو او ژورو تحلیلونو پر بنسټ تر سره کېږي. د افغانستان په اړه د امریکا د نوي حکومت ضد او نقیضې څرګندونې دا پوښتنه راولاړوي چې واشنګټن به له کابل سره د تعامل سیاست غوره کړي او که به د تېر په څېر د فشار او بندیزونو تګلارې ته دوام ورکړي؟ د تېرو شلو کلونو تجربو او له افغانستان څخه د امریکا له وتلو وروسته وضعیت ښيي چې د زور، بندیزونو او منزوي کولو سیاست نه یوازې مطلوبې پایلې نه دي لرلي، بلکې ستونزې یې لا پسې زیاتې کړې دي.

د افغانستان د اوسني اقتصادي بحران یو لوی لامل د امریکا له لوري د افغان شتمنیو کنګلول دي. دا شتمنۍ، چې میلیاردونه ډالره ارزښت لري، د افغان ولس حق دی، نه د کوم سیاسي نظام. د دې شتمنیو کنګلول د عامو افغانانو اقتصادي ستونزو کې مستقیم رول لري. د نړیوالو بشري قوانینو له مخې، د یوه ملت ملي شتمنۍ باید د سیاسي اختلافاتو له امله بندې نشي. پر دې سربېره، د افغانستان بانکي سیستم ته محدودیتونه نه یوازې د افغانانو د ژوندانه ستونزې زیاتوي، بلکې د نړیوالو خیریه مؤسسو فعالیتونه هم له خنډ سره مخ کوي.

له اقتصادي ستونزو سره د بشري ناورین مسئله هم تړلې ده. د بندیزونو او اقتصادي فشارونو له امله د میلیونونو افغانانو ژوند له ګواښ سره مخ دی. د خوراکي توکو، درملو او د ژوند د نورو اړتیاوو کموالی د دې لامل شوی چې د افغانستان عام وګړي، په ځانګړې توګه ښځې او ماشومان، د لوږې، بېوزلۍ او ناروغیو قرباني شي.

افغانستان د سیمې په جغرافیوي او ستراتېژیک موقعیت کې یو مهم هېواد دی. که امریکا غواړي چې د سیمې په ثبات او امنیت کې خپله اغېزه وساتي، نو له افغانستان سره تعامل ورته اړین دی.

د افغانستان اسلامي امارت له نړیوال مشروعیت سره د اړیکو جوړولو ته چمتووالی ښودلی. کابل ټینګار کوي چې غواړي له نړیوالو هېوادونو سره د متقابل درناوي پر بنسټ تعامل ولري. امریکا باید دا چانس له لاسه ورنه کړي او د رسمي ډیپلوماسۍ له لارې له افغان حکومت سره اړیکې تنظیم کړي.

د افغانستان د اسلامي امارت په رسمیت نه پېژندل ۳مخ

# د ملي یووالي په موخه د اسلامي امارت د هڅو پر ضد د نظام د مخالفینو پروپاګند

ځواک یوسفزی

د اسلامي امارت له خوا د ملي یووالي په موخه هڅې د هېواد د ثبات او پرمختګ لپاره اړین او بنسټیز اهمیت لري. یووالی په هر هېواد کې د ټولنې د پیاوړتیا او هوساینې لپاره د یوې مهمې اړتیا په توګه پېژندل کېږي، ځکه چې د ټولو طبقو ترمنځ د همغږۍ فضا د هېواد د داخلي او خارجي کړکېچونو پر وړاندې مقاومت ځواکمنوي.

اسلامي امارت هم د خپل حاکمیت له پیل راهیسې د ملي یووالي لپاره پراخې هڅې کړې دي، خو له دې سره سره د نظام مخالفین تل هڅه کوي چې د دې یووالي هڅې ناکامې کړي او خلکو ته داسې ښکاره کړي چې اسلامي امارت په دې برخه کې پاتې راغلی دی. دغه مخالفین د پروپاګند له لارې نه یوازې دا چې د امارت د یووالي پر ضد تبلیغات کوي، بلکې غواړي خلکو ته داسې انګیرنه ورکړي چې د امارت یووالی بې‌ثباته او له خطر سره مخ دی. د دې هدف لپاره دوی له بېلابېلو وسیلو لکه رسنیو، ټولنیزو شبکو او بلې هرې طریقې ګټه اخلي تر څو د خلکو ذهنونه مغشوش او د بې‌باورۍ فضا رامنځته کړي.

په دې توګه، د اسلامي امارت د یووالي د هڅو پر ضد دغه پروپاګندونه د ټولنې په منځ کې شخړې او ګډوډۍ ته لاره هواروي. په داسې یوه وضعیت کې، د ملت لپاره اړینه ده چې د دې پروپاګندونو په وړاندې بیدار پاتې شي او د اسلامي امارت پر یووالي او قوت باور وکړي. یوازې په دې توګه به وکولی شو چې د دښمن د تخریبي هڅو پر وړاندې د ملي یووالي ټینګښت ته دوام ورکړو او د هېواد د ثبات او پرمختګ لپاره یو مثبت ګام واخلو.

د اسلامي امارت حکومت په دې برخه کې د خپلو اتباعو د ژوند د ښه کولو لپاره ګڼ شمېر پروګرامونه پیل کړل، تر څو د هېواد د اقتصادي انکشاف، د بېوزلۍ د کمولو، د کار موندنې د امکاناتو زیاتولو او د هېواد له انحصار څخه د خپلواکولو په لور یوه مثبته او اوږدمهاله لاره پرانیزي. اسلامي امارت هڅه کوي چې افغانان د خپلې ګټې او سوکالۍ د ترلاسه کولو لپاره د ټولنې ټولو طبقو کې یوځای کړي. د اسلامي امارت د حکومتي قوانینو او اصلاحاتو له مخې، ټول افغانان باید د خپلو قومونو او اقلیتونو ترمنځ خپل ټولنیز او قومي توپیرونه هېر کړي او د ملي یووالي لپاره ګډ ژوند ته وده ورکړي.

په دې توګه، اسلامي امارت د خپلو اقداماتو له لارې د افغانانو د حقوقو خوندي کولو او د هېواد د امنیتي او اقتصادي وضعیت د ښه کولو لپاره خپلې ټولې هڅې وقف کړي.

خو له دې سره سره، په افغانستان کې د اسلامي امارت د حکومت د ملي یووالي د هڅو پر وړاندې یو شمېر داسې هېوادونه او مخالفین هم موجود دي چې د دې پرمختګونو د مخنیوي لپاره یې پراخې پروپاګندي جګړې پیل کړې. دا مخالفین اکثراً د لوېدیځو هېوادونو، نړیوالو ځواکونو او د هغوی د متحدینو له خوا یې ملاتړ کېږي او هغه خلک دي چې هدف یې یوازې د افغانانو ترمنځ د بې اتفاقۍ، بې اعتمادۍ او د ټولنیزو شخړو د پراختیا هڅه ده. د دې مخالفینو پروپاګند د اسلامي امارت د حکومت د قوانینو او د هغه د سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو اصلاحاتو په اړه غلط معلومات او بې اساسه راپورونه خپرول دي. په دې ډول، هغوی هڅه کوي چې افغانانو ته دا وښودل شي چې د اسلامي امارت حکومت د افغانانو د سوکالۍ او پرمختګ لپاره هیڅ جدي هڅې نه کوي.

په دې پروپاګند کې یوه عمده برخه د اسلامي امارت د حکومت د قوانینو، حکومتي اقداماتو او د ټولنیزو اصلاحاتو د اغېزو په اړه د بې اساسه او ناسمو راپورونو خپرول دي. د دې پروپاګند په ترڅ کې هڅه کېږي چې د اسلامي امارت حکومت په داسې ډول وښودل شي چې د افغانانو د پرمختګ لپاره هېڅ ډول ځانګړې هڅې نه کوي او یوازې یو ځانګړی قوم یا ډله پکې ګټې ترلاسه کوي.

په ورته ډول، مخالفین د دې پروپاګند په ترڅ کې هڅه کوي چې د افغانانو د اقتصادي وضعیت په اړه بې اساسه راپورونه خپاره کړي او د دې پروپاګند له لارې هڅه کېږي چې د اسلامي امارت حکومت د اقتصادي پرمختګ په برخه کې ناپېژندګلوي څرګنده کړي او د هغه د حکومتي کړنو اغېزې د افغانانو پر ژوند ناسمې انځور کړي.

د اسلامي امارت د حکومت د ملي یووالي د هڅو پر وړاندې دا پراخ پروپاګند د افغانانو ترمنځ د بې اعتمادۍ رامنځته کولو او د هغوی ذهنیت ته د بدګومانۍ پیغامونو ورکولو لپاره یوه ستراتېژیکه هڅه ده. په دې پروپاګند کې د دې هدف لپاره بې اساسه او ناسم راپورونه خپاره شوي، چې د افغانانو ذهنیت ته یې د ګډ ژوند او یووالي د پراختیا پر ځای د بې اعتمادۍ او بې ځایه شکونو پیغامونه ورکول. د دې پروپاګند یوه بله ستره برخه د اسلامي امارت د حکومت په اړه د ناسمو معلوماتو خپرول دي. د دې غلطو راپورونو له لارې هڅه کېږي چې د افغانانو په ذهنیت کې د حکومت د کړنو پر وړاندې شکونه، بې اعتمادي او پراخه وېره رامنځته کړي. دغه پروپاګند د دې لپاره ترتیب شوی دی چې د اسلامي امارت د حکومت د مشروعیت او خلکو ترمنځ د باور د لاسته راوړلو په مخنیوي کې ونډه واخلي.

د دې پروپاګندونو پر وړاندې د اسلامي امارت د حکومت څو مهم ګامونه اخیستل اړین دي. یو له هغو ګامونو څخه دا دی چې د حکومت د کړنو او اقداماتو په اړه افغانانو ته شفاف، دقت لرونکي او رښتیني معلومات وړاندې شي.

د دې معلوماتو ورکول اړین دي تر څو افغانان پوه شي چې د اسلامي امارت حکومت د هغوی د سوکالۍ، امنیت او پرمختګ لپاره پراخې هڅې کوي. د دې پروپاګند په وړاندې د مبارزې لپاره بل مهم ګام د اسلامي امارت د حکومت د قوانینو او اصلاحاتو په اړه د خلکو ذهنیت روښانه کول دي.

له دې سره سره، باید افغانانو ته د دې حقیقت په اړه آګاهي ورکړل شي چې دغه پروپاګندونه یوازې د هېواد د پرمختګ او سوکالۍ د مخنیوي لپاره رامنځته کېږي.

د دې پروپاګندونو پر وړاندې مبارزه یوازې د حکومت مسئولیت نه دی، بلکې دا د ټول افغان ملت ګډه مبارزه ده. افغانان باید د دې پروپاګندونو د مخنیوي لپاره خپل مقاومت وښيي، خپل ذهنیتونه او فکرونه صاف کړي، او د هېواد د خپلواکۍ، سوکالۍ او پرمختګ لپاره سره متحد شي.

د دې پروپاګندونو پر وړاندې مبارزه باید یوازې د حکوم محدودې کې پاتې نه شي، بلکې د افغانانو ټول ملت باید د دې غلطو معلوماتو پر وړاندې خپل غبرګون پورته کړي، خپل ځانونه متحد کړي او د دې ډول دسیسو پر وړاندې خپل موقف پیاوړی کړي.

د دې پروپاګندونو پر وړاندې د مبارزې بل اړین اړخ دا دی چې په ټولنه کې د آګاهۍ پراختیا ته وده ورکړل شي. افغانان باید پوه شي چې دا پروپاګندونه یوازې د دې لپاره رامنځته کېږي چې د افغانستان د پرمختګ او سوکالۍ مخه ونیسي. د دې لپاره چې افغانان د دې پروپاګندونو په وړاندې خپله مبارزه بریالۍ کړي، باید د خپلو ملي ارزښتونو او خپلواکۍ په ساتلو کې سره متحد او هوښیار شي. ۳مخ

# له شیطان سره ملګرتیا څه ده؟

جمیل باور

ملګرتیا هغه وخت ګټوره وي چې دواړه اړخونه ترې ګټه واخلي او د ښېرازۍ لامل شي، خو د انسان او شیطان ترمنځ په ملګرتیا کې یوازینی تاوان انسان کوي، شیطان نه یوازې دا چې تاوان نه کوي، بلکې هغه هدف ته رسېږي چې د انسان د بېلارې کولو لپاره یې لري. هر کله چې بنده ګناه وکړي، نو یوه درجه ښکته شي او همداسې وي، تر دې چې لاندې وغورځېږي او هر کله چې ښه عمل وکړي، نو یوه درجه لوړ شي او همداسې په لوړه روان وي، تر دې چې لوړو مرتبو ته ورسېږي او ډېر ځله د بنده له ژوند سره دا تړلې خبرې دي چې په خپل ژوندانه کې به ښکته او پورته ځي او هر یو اړخ چې غالب شو، نو له همغې ډلې څخه به شمارل کېږي.

نو هېڅ وخت هغه انسان چې سل درجې لوړ ختلی وي او یوه درجه ټیټ ښکته شوی وي، له هغه انسان سره برابر نه دی چې سل درجې ټیټ ښکته شوی وي او یوه درجه لوړ ختلی وي!

نننۍ زمانې ته په کتو د نظر ساتنه په ځانګړي ډول د ځوانانو لپاره لومړیتوب لري، ډېر ځوانان او پېغلې داسې دي چې په ګناهونو کې غرق دي، کله چې دوی له ګناه څخه د ځان ساتنې هڅه کوي او اراده وکړي چې د نجات کومه لاره پیدا کړي، نو نفس یې بیا بیا ځلې ګناه ته کش کړي او په ګناه کې یې ښکېلوي، په همدغه کشمکش کې کله ناکله هغوی د نا امیدۍ ښکار شي، خو په یاد ولرئ کله چې د زړه له اخلاصه او د زړه له تله توبه وباسي، نو توبه قبلېږي او انسان له ګناه څخه پوره پاکېږي. بنده ته په هېڅ حال کې هم په کار نه ده چې د الله تعالی له رحمت څخه ناامیده شي، الله تعالی فرمایي : د الله له رحمته مه ناامیده کېږئ؛ ځکه د الله له رحمت څخه یوازې کافران ناامیده کېږي، یعنې له مسلمان سره نه ښایي چې د الله تعالی له رحمت نه ناهیلی شي؛ ځکه ناهیلي د کافرانو صفت دی.

د ځوانۍ په جریان کې، خلک د فزیکي بلوغ او فکري او احساساتي بلوغ له پړاوونو څخه تېرېږي. په دې دوره کې خلک د بلوغ له ستونزو لکه بلوغ، د راتلونکي په اړه د ذهني ګډوډۍ او داسې نورو سره مبارزه کوي، د ځوانۍ په وخت کې خلک ډېر قوي احساسات او عواطف لري او د دې دورې ملګري هم د همدغو ستونزو او قوي احساساتو تر اغېزو لاندې راځي.

د یوې څېړنې په ترڅ کې چې په ۴۰ زره بریتانوي جوړو ترسره شوې، دا په ډاګه شوې، هغه جوړې چې د ژوند کچه یې سره ورته ده، د ژوند د کلونو له لحاظه ډېره دوامداره وي. د خلکو ټول شاخصونه یو اغېزناک عامل دی، د عمر، فزیکي حالت، د پوهنتون زده کړې، مالي حالت، دنده او نورو د ورته والي په توګه، خلک یو بل ته نږدې وي، د دوی ترمنځ اړیکې ژورې وي او ښه پوهېږي. په همدې ډول، څومره چې شخصي ګټې ورته ډېرې وي، هومره د خلکو تر منځ د جګړې احتمال کم وي. په همدې کچه پاتې کېدل یې دې ته اړ کړل چې نور خلک هم د خپلې درجې په توګه وګڼي او ځان تر پوښتنې لاندې کس څخه لوړ یا ټیټ ونه ګڼي. په دې څېړنه کې حتی ورته سیاسي تمایلات په اړیکو کې اغېزمن دي.

بدنظري په حقیقت کې د ګناهونو لومړۍ دروازه ده، نو ځکه مو له نورو ګناهونو دا ګناه را وړاندې کړه. دا هغه ګناه ده چې په کولو سره یې انسان د ګناهونو یو سیلاب پر ځان را خلاصوي. نن سبا اکثره ګناهونه د سترګو له لارې کېږي، هر طرف ته چې ګورې، نو ګنهګارېږې؛ ځکه فتنې دومره زیاتې شوې او د ګناهونو دروازې دومره ډېرې راخلاصې شوې چې اندازه یې نه شته، هغه ګناهونه چې د سترګو له لارې ترسره کېږي یو الله ته معلوم دي، اکثره د ګنې ګونې په ځایونو کې خلک ورسره مخ کېږي لکه: بازارونه، روغتونونه، ودونه، د کلي ګودرونه، زیارتونه، دربارونه، مېلې او داسې نور بې معنی ځایونه. دا هغه خطرناکه ګناه ده، چې حتی د ځمکې په هغې مقدس ترینه خاوره (حرمین شریفین) کې هم ترې بچ کېدل آسانه نه دي. شیطان نه شي کولی چې سمدلاسه یو څوک په زنا کې واقع کړي، بلکې لومړۍ مرحله یې د سترګو غلط استعمال دی، له سترګو نه وروسته زړه ته سګنال ورکول کېږي او دا خبره بیا دماغو کې ځای نیسي، د اړیکې او ناستې پاستې لپاره کوښښ پیلېږي، بیا چکر وهل پیل شي او بالآخره انسان په هغې لویې ګناه کې واقع شي چې زنا یا لواطت دی!

ځینې خلک په هر څه پوهېږي خو د ناوړه قصد درلودلو له امله پر یوه پاک انسان باندې بدګمانه کېږي، ځکه دی غواړي هغه شخص بدنام کړي او له دې لارې څخه خپل ناوړه هدف ته ورسېږي، که څه هم ممکن دا بدګماني شعوري وي او یو ډول تظاهر وي، خو د داسې هدف تعقیبول انسان په تعصب اخته کوي او د انسان عقل له منځه وړي، نو ځکه دغه انسان په داسې منفي ګرایۍ باندې روږدی کوي چې هرڅه ته د شک او تردید په سترګه ګوري او پر ډېرو پاکو انسانانو یې ګمان بد وي، لکه یهود چې د حقائقو پېژندنې سره سره پر مسلمانانو باندې بدګمانه دي.

د زړه او سترګو لاره یوه ۳مخ

# صفا کاران شاروالی باید کارهای شانرا در وقت معین اجراء کنند

عزیزی

از پیروزی امارت اسلامی افغانستان نزدیک به چهار سال می شود، در این مدت با توجه به کارکرد های مهم بنیادی و متوازن که از طرف شاروالی کابل صورت گرفته است و تغییرات مثبتی هم در حصه زیر بناهای اقتصادی و هم در حصه بازسازی سرک ها و همچنان پاکسازی پیاده روها بوجود آمده است. این اقدامات مفید و ارزنده را میتوان نقطه عطفی در سازنده گی کشور تلقی نمود. خصوصاً در این مدت نوسازی و بازسازی سرکها در نواحی مختلف شهرکابل می باشد که صد ها کیلومتر سرک نوسازی و قیرریزی شده که سبب رضایت مردم ما از این ارگان شده است. چهاراهی ها و پارک‌های شهر کابل نیز نسبت به سال‌های گذشته از اثر مواظبت جدی و دوامدار شاروالی کابل رنگ دیگری به خود گرفته و روز به روز بر سر سبزی و شادابی پارک‌ها افزوده می شود. باید گفت طی سالیان گذشته ساخت و ساز سرک ها ،پیاده روها و سایر تاسیسات شهری از دو لحاظ قابل انتقاد بود. یکی این که در کیفیت ساخت آن ها دقت لازم صورت نمی گرفت و دیگر استفاده نادرست و خارج شدن آن از اختیار رهگذران در تخریب زودرس آن ها نقش داشت. خدا را شکرگزاریم که در این مدت همانگونه که مسئولین امور و خصوصاً شاروالی کابل در همه عرصه کارهای خوبی را انجام داده اند و مردم نتایج آنرا در تغییرات مثبت در سیمای شهر مشاهده می کنند. حالا نوبت شهروندان ماست که در نگهداری ، حفاظت و نظافت آن توجه لازم نمایند. پاککاری و صفایی کوچه های فرعی و سایر نقاط مختلف نیز از طرف پرسونل شاروالی کابل ادامه دارد و روزانه انبار های کثافات توسط وسایط این ارگان بیرون از شهر انتقال داده می شود که شهر پاک شود و مردم از شیوع امراض گوناگون در امان باشند. واقعاً که شاروالی کابل در این مدت توانسته است با عواید داخلی خود وبا ساخت و ساز پروژه های مهم چهره شهرهای بزرگ کشور را تغییر بدهد. ولی با تاسف باید گفت که یک عده از پرسونل شاروالی کابل صفایی شانرا به خصوص جاروب سرک ها را در ساعات ازدحام و شروع کار مامورین دولتی و سایر ارگان‌ها یعنی در وقت رسمیات آغاز می کنند. وقتی از کنار سرک عبور کنید، انبوه خاک های آلوده و کثیف را تنفس میکنید و در این سرمای زمستان که احتمال شیوع امراض مثل زکام،ریزش و دیگر امراض تنفسی زیاد است که بدون تردید با چنین امراض شهروندان ما مبتلا می شوند. گر چه چندین بار از این اشخاص سوال شده که چرا کار پاککاری خود را در وقت معین اجراء نمی کنید؟ اکثر شان بدون کدام پاسخ به کار شان ادامه می دهند. بناءً مسئولین شاروالی کابل در قسمت تعیین اوقات صفایی پرسونل خویش به خصوص آنانی که مسئولیت جاروب کردن سرکها و کوچه ها را دارند توجه نموده و برایشان تاکید کنند که کار شانرا در وقت تعیین شده آغاز و ختم نمایند، تا باشد که شهروندان به ویژه کارمندان دولتی بدون کدام مزاحمت به محل کار خویش بروند و مصروف خدمت به هموطنان شان شوند.

# افغان اعلانات

### اعلان داوطلبی

موضوع: نشر اعلان داوطلبی (مزایده) زمین تانک تیل امارتی بازار اسلام قلعه.

(( محترم نادر شاه ولد حاجی گلاب، زمین تانک تیل مخروبه بازار اسلام قلعه ولایت هرات ملکیت شرکت امارتی نفت و گاز افغانستان را در بدل کرایه ماهوار مبلغ (10000) افغانی بطور قرار داد به اجاره میگیرد، افراد، اشخاص و شرکت های که خواهش مزایده را داشته باشند با ارائه درخواستی شرطنامه داوطلبی تانک مذکور را اعتبار از تاریخ نشر اعلان هذا الی (10) روز تقویمی از ریاست نفت و گاز ولایت هرات و یا از دفتر مرکزی شرکت امارتی نفت و گاز افغانستان واقع کوتل خیرخانه بدست آورده خودشان به روز معینه جهت اشتراک در جلسه آفرگشائی مراجعه نمایند. برطبق شرطنامه تأمینات اخذ میگردد.))

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ترجمه انگلیسی نکاح خط شرعی دارای نمبر ۱۵۰۰۷۳۰ به اسم قادرفرزند فقیر خان و محترمه رقیه بنت خان افضل مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشد.۹۲۱۰

### اطلاعیه به کرایه دهی

ریاست املاک شرکت انکشاف ملی ،جایداد های خویش را به شرح ذیل به مدت سه سال به عقد قرار داد می سپارد.

-۱غرفه های نمبر ۲۰ و نمبر ۴۶ به مساحت ۹ متر مربع واقع بازار غرفه های شهرک امارات.

-۲غرفه های نمبر ۱۹،۱۸، ۲۰ ، و ۲۱ به مساحت ۴ متر مربع واقع شهرک امارات.

-۳یک باب موتر شویی به مساحت ۴۰۰ متر مربع واقع بادام باغ.

-۴دکان تیپیک نمبر ۱ بازار قصبه با مساحت ۸۲.۵ متر مربع.

-۵ دکان تیپیک نمبر ۲ بازار قصبه با مساحت ۵۱.۵ متر مربع.

-۶دکان تیپیک نمبر ۳ بازار قصبه با مساحت ۸۲.۵ متر مربع.

-۷دکان تیپیک نمبر ۴ بازار قصبه با مساحت ۶۳.۵ متر مربع.

-۸ دکان تیپیک نمبر ۶ بازار قصبه با مساحت ۶۳.۵ متر مربع.

-۹دکان نمبر ۴ و نمبر ۵ فاز ۳ شهرک امارات.

-۱۰یک باب کافی شاپ واقع صالون عامه شرکت انکشاف ملی .

اشخاصی که خواهش عقد قرار داد جایداد های فوق را داشته باشند ، درخواست های خویش را بعد از نشر اعلان الی مدت ۲۱ روز و با ذکر مشخصات جایداد به شرکت انکشاف ملی واقع قصبه ناحیه ۱۵ شهر کابل بسپارند. ، شرطنامه را ملاحظه نموده تضمین اخذ میگردد.۹۱۸۸

### اطلاعیه به کرایه دهی

ریاست املاک شرکت انکشاف ملی ،جایداد های خویش را به شرح ذیل به مدت سه سال به عقد قرار داد می سپارد.

-۱غرفه های نمبر ۲۰ و نمبر ۴۶ به مساحت ۹ متر مربع واقع بازار غرفه های شهرک امارات.

-۲غرفه های نمبر ۱۹،۱۸، ۲۰ ، و ۲۱ به مساحت ۴ متر مربع واقع شهرک امارات.

-۳یک باب موتر شویی به مساحت ۴۰۰ متر مربع واقع بادام باغ.

-۴دکان تیپیک نمبر ۱ بازار قصبه با مساحت ۸۲.۵ متر مربع.

-۵ دکان تیپیک نمبر ۲ بازار قصبه با مساحت ۵۱.۵ متر مربع.

-۶دکان تیپیک نمبر ۳ بازار قصبه با مساحت ۸۲.۵ متر مربع.

-۷دکان تیپیک نمبر ۴ بازار قصبه با مساحت ۶۳.۵ متر مربع.

-۸ دکان تیپیک نمبر ۶ بازار قصبه با مساحت ۶۳.۵ متر مربع.

-۹دکان نمبر ۴ و نمبر ۵ فاز ۳ شهرک امارات.

-۱۰یک باب کافی شاپ واقع صالون عامه شرکت انکشاف ملی .

اشخاصی که خواهش عقد قرار داد جایداد های فوق را داشته باشند ، درخواست های خویش را بعد از نشر اعلان الی مدت ۲۱ روز و با ذکر مشخصات جایداد به شرکت انکشاف ملی واقع قصبه ناحیه ۱۵ شهر کابل بسپارند. ، شرطنامه را ملاحظه نموده تضمین اخذ میگردد.۹۱۸۸

### اطلاعیه فسخ جواز رهنمای معاملات

جواز شماره ۹۲۶ مورخ ۱۴۰۱/۱۰/۳ رهنمای معاملات پنجشیر هاشمی واقع نو آباد پروژه جدید ناحیه (۱۱ )شاروالی کابل به اسم سید فاروق فرزند سید بدر الدین نسبت فوت ، جواز موصوف قابل لغو می باشد. که بعد از نشر اعلان رهنمای مذکور فاقد اعتبار قانونی بوده هر گاه ادارات دولتی و اشخاص انفرادی بالای موصوف ادعای حقوقی به ارتباط فعالیت جواز مذکور داشته باشند بعد از نشر اعلان الی مدت یک هفته به ریاست عمومی انسجام ، وزارت عدلیه اطلاع دهند.۹۲۰۸

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت حمید نوید لمتید یک عراده موتر پلیت -۲۹۱۱۴۹ ۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای بادام گل فرزند شایسته گل بفروش رسانیده است. بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۲۰۷

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت الفت حاشر لمتید یک عراده موتر پلیت ۷۹۱۶-۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای بازمحمد فرزند نور احمد بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۲۹۰۵

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوی برادران جمشیدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۹۶۷۸۱-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عبدالرحمن فرزند مهر دل بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۲۰۳

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم عبدالمنیب بها فرزند عبدالروف ولدیت غلام حضرت دارنده تذکره نمبر ( -۷۸۶۵۰ ۱۲۰۴-۱۳۹۹ ) مسکونه اصلی ولایت غزنی وکیل امتیاز دواخانه صمیم ذکی واقع ناحیه هفتم ولایت کابل عنوانی معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه موکل خویش بالای محترم نجیب الله حقانی فرزند غلام حقانی حقانی ولدیت غلام ربانی صافی دارنده تذکره شماره ( -۵۷۲۳۴ -۰۴۰۰ ۱۳۹۹ ) مسکونه اصلی ولایت کونر گردیده است. اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۲۱۵

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم سعد الدین رسولی فرزند برات ولدیت غلام رسول دارنده تذکره نمبر (-۱۱۷۲۸ ۱۱۰۵ -۱۳۹۹ ) مسکونه اصلی ولایت لوگر مالک امتیاز دواخانه فرهاد موسی زی واقع ناحیه دوم ولایت کابل عنوانی معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم گران محمد فرزند علی محمد ولدیت عبدالاحمد دارنده تذکره شماره ( ۱۸۹۲۵۰۵ ) (ج اول ق ۱۳۹۰ ص ۱۵۶ ث ۷۷۷ ) مسکونه اصلی ولایت وردگ گردیده است .اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۲۱۷

### د ملي یووالي په موخه...

ټول افغان ولس ته اړینه ده چې پوه شي، دا پروپاګند یوازې د بهرني لاسوهنې په نتیجه کې د داخلي پردیپالو غلامانو په لاس ترسره کېږي او هدف یې یوازې د افغانستان د سوکالۍ، خپلواکۍ او پرمختګ د مخنیوي لپاره دی.

د دې پروپاګندونو پر وړاندې د مبارزې لپاره افغان ولس باید د خپلو ملي ارزښتونو پر اساس یووالي ته وده ورکړي. یوازې په داسې شرایطو کې افغان ولس کولی شي د خپل هېواد د سوکالۍ، پرمختګ او سولې لپاره یو پرمختللی ګام واخلي.

له دې سره سره د اسلامي امارت حکومت ته اړینه ده چې د خپلو اقداماتو په اړه د افغانانو ذهنیت ته روښانه معلومات ورکړي او دا د افغانانو په ذهنیت کې ځای پر ځای کړي چې د دې حکومت هدف یوازې د هېواد سوکالي، خپلواکي او پرمختګ دی.

د دې پروپاګندونو په وړاندې د مبارزې لپاره، د افغانانو د ذهنیت روښانه کول او د حقیقتونو د پراختیا لپاره یوه پراخه هڅه اړینه ده چې په دې برخه کې حکومت دیني علماء، مخور خلک، ځوانان، پوهان او په ځانګړې ډول رسنۍ مسئولیت لري.

له دې سره سره د اسلامي امارت حکومت باید په دې برخه کې خپل غږ پورته کړي او د خپلو اقداماتو او قوانینو په اړه هر اړخیز او دقیق معلومات وړاندې کړي، تر څو د دې پروپاګندونو پر وړاندې د افغان ولس ذهنیت روښانه شي.

په پای کې د اسلامي امارت د ملي یووالي د هڅو پر وړاندې د مخالفینو او پردیپالو غلامانو پروپاګند د افغانانو د یوې متحدې او پیاوړې ټولنې د جوړولو په لاره کې یو ستر خنډ دی. دغه پروپاګندونه د څو بهرنیو هېوادونو او د هغوی د متحدینو له خوا د خپلو غلامانو په وسیله خپرېږي چې هدف یې د افغانانو ترمنځ بې باوري، شخړې او ګډوډۍ رامنځته کول دي. مخالفین، پردیپال او د افغان ولس دښمنان هڅه کوي چې د اسلامي امارت حکومت ته بدنامي ورکړي او په دې توګه افغان ولس د خپل حکومت په اړه شکمن کړي. خو حقیقت دا دی چې د اسلامي امارت حکومت د افغانانو د سوکالۍ، اقتصادي پرمختګ او ملي یووالي په لور پراخې هڅې کوي.

د مخالفینو پروپاګند د دې لپاره رامنځته کېږي چې د افغانانو ذهنیتونه مغشوش کړي او د یووالي فضا له منځه یوسي. د دې پروپاګندونو په وړاندې د مبارزې لپاره اړینه ده چې د اسلامي امارت حکومت د خپلو اقداماتو په اړه خلکو ته شفاف، دقیق او رښتیني معلومات وړاندې کړي. دا ډول معلومات به افغانانو ته وښيي چې د اسلامي امارت حکومت د دوی د سوکالۍ او پرمختګ لپاره جدي او پراخ پلانونه لري. په همدې توګه، د حکومت د اصلاحاتو او پروګرامونو په اړه خلکو ته د آګاهۍ پراختیا د دې پروپاګندونو په وړاندې د مبارزې یوه مهمه برخه ده. په دې اړه یوازې د حکومت هڅې نه بلکې د ټول افغان ملت یووالي ته هم اړتیا ده.

افغانان باید په ګډه د دې غلطو معلوماتو او پروپاګندونو پر وړاندې خپل مقاومت وښيي. د دې پروپاګندونو پر وړاندې د افغانانو د ذهنیت روښانه کول او د دوی د ملي ارزښتونو پر اساس متحد پاتې کېدل یو له مهمو ګامونو څخه دي چې باید پورته شي. په دې توګه، افغانان کولی شي د خپل هېواد د سوکالۍ، پرمختګ او خپلواکۍ لپاره یو ثابت او مثبت موقف ونیسي.

د دې پروپاګندونو پر وړاندې مبارزه باید یوازې د حکومت مسئولیت نه وي، بلکې دا د ټول افغان ملت ګډه مبارزه ده.

د افغانانو په متحدولو او د پروپاګندونو د حقیقت په اړه د خلکو د ذهنونو روښانه کولو سره به موږ د دې هڅو پر وړاندې د پام وړ بریا ترلاسه کړو. دا مبارزه نه یوازې د اسلامي امارت د حکومت د مشروعیت د پراختیا سبب ګرځي، بلکې د افغانانو د ملي یووالي، خپلواکۍ او سوکالۍ لپاره هم یوه مهمه هڅه ده. د دې پروپاګندونو په وړاندې بریا به نه یوازې زموږ د هېواد پرمختګ تضمین کړي، بلکې د بهرنۍ لاسوهنې پر وړاندې به هم زموږ د ملي ارزښتونو ساتنه وکړي.

افغانان باید پوه شي چې دا پروپاګندونه یوازې د افغانستان د پرمختګ او سوکالۍ د مخنیوي لپاره رامنځته شوي او د دې پروپاګندونو پر وړاندې مبارزه یوازې د اسلامي امارت حکومت پورې محدوده نه ده. بلکې دا د افغانانو ټول ملت دی چې باید د دې غلطو معلوماتو پر وړاندې خپل غږ پورته کړي او د خپل هېواد د سوکالۍ، خپلواکۍ او پرمختګ لپاره د خپلو ملي ارزښتونو په ساتلو کې یووالي او هوښیاري وښيي او له خپل حکومت د افغانستان اسلامي امارت سره ودرېږي او ټول په ګډه د یو سوکاله، آباد او پرمختللي افغانستان لپاره کار وکړو.

### له شیطان سره ملګرتیا ...

ده او ترمنځ یې کړکۍ شریکه ده او یو له بل نه متاثره کېږي، له همدې امله که یو اصلاح کېږي، بل هم اصلاح کېږي او که یو خرابېږي بل هم په عین شکل متاثره کېږي. د هر انسان لپاره لویه خوشبختي دا ده چې دی مړ شي او ګناهونه یې ورسره مړه شي،هغوی چې د خیر کارونه کوي یا خیر خپروي، له مړینې سره به یې د ثوابونو ور رسېدو بهیر جاري وي، که غواړئ له مرګه وروسته مو دوامدار ثوابونه در ورسېږي، دری ډوله کارونه په خپل ژوند کې ضرور تر سره کړئ: نېک اولاد تربیه کول،علم خپرول او کوهي کیندل یا قرآن کریمونه جومات کې ایښودل،یا ورته نور کارونه چې خلکو ته یې په دوامداره ډول خیر رسېږي او خلک ترې ښه استفاده کوي.

### امریکا باید له افغانستان ...

او د تورلېست مسئله، د تعامل پر ځای د تقابل تګلاره ښیي، چې پایله یې د بېثباتۍ دوام او د سیمهییز امنیت تهدید دی.د نړۍ اوسنی وضعیت، په ځانګړې توګه د اوکراین جګړه، د چین او امریکا ترمنځ سیالي او د منځني ختیځ بدلونونه، دا ایجابوي چې امریکا باید د افغانستان په سیاست کې نوې تګلاره غوره کړي. افغانستان ته د مشروع حکومت په توګه د تعامل ورکول، د شتمنیو ازادول او د تور لېست مسئلو ته د حل لټول، کولای شي د دواړو هېوادونو او سیمې لپاره مثبتې پایلې ولري.په پای کې، واشنګټن باید د تېرو ناکامو سیاستونو له تجربې زدکړه وکړي او د افغانستان په اړه نوې، معقولې او د متقابل تفاهم پر اساس پالیسۍ غوره کړي. د بندیزونو، ګوتڅنډنو او منزوي کولو سیاستونه باید پای ته ورسېږي او پر ځای یې د ډیپلوماسۍ، همکاریو او متقابل درناوي لاره خپله شي. که امریکا له افغانستان سره د تعامل دروازه پرانیزي، نو دا به د دواړو هېوادونو او ټولې سیمې لپاره مثبتې پایلې ولري.

### هېڅوک دا ځواک ...

یې په نورو سیمو کې ځای پر ځای کړي.د ټرمپ دا څرګندونې لا له وړاندې له غبرګونونو سره مخ وې او په خپله امریکا کې هم دیموکراتانو دا ((قومي تصفیه)) بللې وه.

### ایلان ماسک د آزادۍ ...

مخالفت کوي.امریکا غږ او د ازادې اروپا-ازادۍ راډیو ګانې د امریکا د حکومت له لوري تمویلېږي او د نړۍ پر بېلابېلو ژبو خپرونې لري.یادو رسنیو تر دې مهاله د ایلان ماسک د څرګندونو او وړاندیز په تړاو څه نه دي ویلي.

### لیبیا کې ډله ییز ...

خښ شوي وو.ده زیاته کړه ،چې د ژوندیو پاتې شویو کسانو د معلوماتو له مخې، نږدې ۷۰ کسان په هغه ځای کې ښخ شوي وو او چارواکي لاهم په سیمه کې پلټنه کوي. العبرین خیریه موسسې چې په ختیځه او سویلي لیبیا کې کډوالو سره مرسته کوي، وویل چې په ډلهییزو قبرونو کې موندل شوي ځیني کسان، د ښځو پروړاندې په ډزو وېشتل شوي او وژل شوي دي.له دې وړاندې هم په لیبیا کې اروپا ته د رسېدو په تکل د پناهغوښتونکو ډلهییز قبرونه موندل شوي وو.اروپا ته د رسېدو لپاره لیبیا د افریقا او منځني ختیځ هېوادونو دکډوالو او پناه غوښتونکو لپاره له ټولو نږدې او اصلي لاره ګڼل کېږي.

### سعودي کې د فلسطینیانو ...

کړي، چې فلسطین د فلسطینیانو خاوره ده او تر هغې، چې اشغال دوام کوي او د فلسطیني ولس حقونه نقض کېږي، غزه او سیمه به نا ارامه وي او دا وضعیت د هېچا په ګټه نه دی. سعودي عربستان هم دا څرګندونې غندلې او ویلې یې دي، چې فلسطینیان پر خپله خاوره د اوسېدو حق لري او دوی اشغالګر یا کډوال نه دي، چې د ظالم اسرائیلي اشغال له غوښتنې سره سم، له خپل هېواد او سیمې څخه ووځي. نتانیاهو په یوه تلویزیوني مرکه کې ویلي، چې سعودي فلسطیني دولت په سعودي عربستان کې جوړولای شي او دوی هلته ډېره ځمکه لري.د نتانیاهو دا څرګندونې د قطر، اردن، مصر، متحدو عربي اماراتو، کویټ او عراق په شمول د عربي هېوادونو او د خلیج د همکارۍ شورا د شپږو هېوادونو له توند غبرګون سره مخ شوې دي.

### اسلامي امارت د بېوزلۍ ...

شمېر پروژې هم تر کار لاندې دي، څو وکولی شي په هېواد کې بېوزلي کمه کړي.د خوړو نړیوال پروګرام په خپله ایکس پاڼه کې د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي؛ چې شدیده لوږه په نړۍ کې د پراختیا په حال کې ده، د دې بنسټ په وینا د افغانستان په ګډون په ۷۴ هېوادونو کې بېوزلي او لوږه زیاته شوې ده.د خوړو نړیوال پروګرام د ۲۰۲۵ کال لپاره ۱۶.۹ میلیارده ډالرو ته اړتیا لري، څو په نړۍ کې ۱۲۳ میلیونو زیانمنو شویو او جګړه ځپلو کسانو سره مرسته وکړي.له بلې خوا اقتصادي کارپوهان په افغانستان کې د بېوزلۍ په کمولو کې د نړیوالو بنسټونو او سازمانونو نقش مهم بولي او وایي، د ملي او نړیوالو بنسټونو له لوري بشري مرستې باید په بنسټیزو پروژو کې ولګول شي.دا په داسې حال کې ده، چې اسلامي امارت تل هڅه کړې څو د لویو بنسټیزو پروژو په پلي کېدو سره په هېواد کې کورنیو تولیداتو او محصولاتو ته په پام سره د کرنې او مالدارۍ سکتور پیاوړی کړي او د بېوزلۍ د کمولو او دکارۍ فرصتونو رامنځته کولو برخه کې اساسي ګامونه اوچت کړي.

### ننګرهار کې ۲۲۳ تنو ...

په ۲۲ ولسوالیو کې ۲ زره ۱۹۷ کسان په ورته پروژو کې په کار بوخت دي او له همدې لارې د خپلو کورنیو لپاره حلاله روزي ترلاسه کوي.

### د نوي کابل پروژې ...

پارسل پراختیا ورکوونکی شرکت ویلي و، چې له تأیید وروسته به دوی خپلې چارې بشپړې کړي. په دې لړ کې د نوي کابل پروژې مسئول د دې پروژې پر اهمیت ټینګار کوي او ډاډ ورکوي ،چې دا طرحه به په معیاري ډول عملي شي.سید مقدم امین زیاتوي چې دوی به خپل مسئولیت پر ټاکل شوي وخت ترسره کړي.د نوي کابل د پروژې مسئول، سید مقدم امین هم وایي: موږ له نړیوالو معیارونو سره سم او د ښار جوړونې او کور جوړونې وزارت تر څار لاندې، د دې پروژې په ترسره کولو کې ژمن یو. زموږ ډېر شرکتونه په دې پروژه کې فعالیت لري او وړاندې شوې طرحه به په بشپړه توګه عملي شي.))د کابل د نفوسو د زیاتوالي، د هوا د ککړتیا او تر ځمکې لاندې اوبو د کمښت له امله، د دغه ښار ځیني اوسېدونکي د نوي کابل پروژه د ژوند د آسانتیاوو د زیاتېدو لپاره مهمه ګڼي. شاهمحمد شاه، د کابل یو تن اوسېدونکی وایي: ((د خلکو راټولېدل، د هوا ککړتیا او د ښار ستونزې ورځ تر بلې زیاتېږي. دا مهمه ده چې د کابل نوې پروژه په جدي توګه تعقیب او عملي شي.))محمد رضا، د کابل یو بل اوسېدونکی زیاتوي: ((د کابل نفوس ډېر شوي دي. موږ هیله من یو چې دا پروژه بشپړه شي ،ترڅو خلک وکولی شي په یو مناسب چاپېریال کې ژوند وکړي.)) د نوي کابل پروژه د یوه جاپاني شرکت له خوا په څلورو پړاوونو کې طراحي شوې، چې هر پړاو یې ۱۵برخې لري.د کور او ښارجوړونې وزارت مسئولین وایي: دا پروژه به د اوسني کابل یو نیم برابره پراخه وي او د درې میلیونو کسانو د استوګنې ظرفیت به ولري.

### د بخش آباد بند ...

مولوي غوثالدین رهبر د بند پر چټکې رغونې او لوړ کیفیت ټینګار وکړ او له مسئولینو یې وغوښتل ، چې پاتې چارې په لنډ وخت کې بشپړې کړي.د بخش آباد بند د کنټرول او کیفیت مدیر انجنیر محمد رفیق نوري وایي، چې د بند رغنیزې چارې په دوو شفتونو کې روانې دي او په راتلونکو ۶ میاشتو کې به ګټې اخیستنې ته چمتو شي.چارواکو د ولسي وګړو د ستونزو او غوښتنو په پام کې نیولو سره د بند د اړوندو چارو پر چټکتیا ټینګار کړی دی.

### پنجشیر کې د صنعتي ...

شوي، چې راتلونکي کال کې به یې د جوړولو چارې پیل شي.د یادونې وړ ده، چې په دې وروستیو کې د هېواد په بېلابېلو ولایتونو کې د صنعتي ښارګوټو د جوړولو لپاره د امیرالمؤمنین حفظه الله د ځانګړي فرمان پر اساس زرګونه جریبه ځمکه ځانګړې شوې ده، چې د داخلي تولیداتو د زیاتېدو او اقتصادي پرمختګ لپاره یو مهم ګام ګڼل کېږي.

### د بغلان د ډبرو ...

افغانۍ عواید ترلاسه شوي او د دولت خزانې ته سپارل شوي دي.)) بله خوا په بغلان کې د ډبرو سکرو د یوه کان مسئول، بشیر ایوبي وایي: له پخوا اوس د ډبرو سکرو د استخراج چارې په معیاري بڼه ترسره کېږي او په کانونو کې د پېښېدونکو ګواښونو لپاره جدي تدابیر نیول شوي دي. (( په کانونو کې له فلزي او لرګینو تحکیماتو پرته موږ یو متر هم مخته نه ځو او د کانونو استخراج نه ترسره کوو،ځکه د راغورځېدو خطر ورسره زیات وي. کوم کس که ټپي کېږي؛ امبولانس مو په خدمت کې دی او آسانتیاوې مو برابرې کړي.))له بلې خوا د بغلان د ډبرو سکرو په کانونو کې پر کار بوخت کاریګر له اسلامي امارته غواړي ،چې له دغو کانونو څخه ترلاسه کېدونکي عواید پر پراختیایي پروژو ولګوي، ترڅو نورو کسانو ته هم د کار زمینه برابره شي.د کرکر کان کې دوه تنه کاریګر حشمت الله او غلام سخي په دې اړه وایي:(( له دولت نه مو غوښتنه دا ده، چې د کانونو عواید دې پر پراختیایي پروژو ولګوي، هم به وطن ودان وي او هم به ځوانانو ته کاري فرصتونه برابر شي.)) (( له ټولو سوداګرو څخه غواړو، چې په هېواد کې دننه پر کانونو پانګونه وکړي او دلته دې شرکتونه جوړ کړي، ترڅو نوي ځوان نسل دلته کار وکړي او بهر ملکونو ته ولاړ نه شي.))د یادونې وړ ده، چې د هېواد شمال د تېلو، ګازو، مالګې او ډبرو سکرو ترڅنګ نور مهم کانونه لري چې د یو شمېر لویو ملي پروژو چارې د همدې کانونو پر عوایدو روانې دي.

### غزني او بلخ کې...

هېوادونو د لېست سر ته روان دي. مولوي مخلص ټینګار وکړ، چې له همدې وضعیت سره د مبارزې او په هېواد کې د اقلیمي بدلون د بدو اغېزو د راکمولو په موخه د چاپېریال ساتنې ملي اداره د دغه ډول پروژو د پلي کولو هڅې کوي. ده وویل: «غواړو د دې پروژو په ذریعه خلکو ته عامه پوهاوي ورکړو او هغه ونې او بوټي ور ته معرفي کړو چې د هوا په ښه کولو، سمسورتیا او د اقلیمي بدلون د بدو اثراتو په راکمولو کې ګټورې ثابتېدای شي». نوموړي په غزني او بلخ کې د څېړنیزو فارمونو جوړولو ته په اشارې وویل، چې دا قرارداد د خلکو د هوساینې لپاره د چاپېریال ساتنې او د اقلیمي بدلون له بدو پایلو د ولس د خوندیتوب په برخه کې د اسلامي امارت ژمنتیا څرګندوي. د چاپېریال ساتنې ادارې رئیس دغه راز وویل، چې د مرستندویو شرکتونو او ادارو په مرسته به تر ۱۴۱۰ لمریز کال پورې په ټول هېواد کې ۲۰۰ میلیونه میوه لرونکي او شنډې ونې وروزي، چې په کلني ډول ۲۵ میلیونه ونې کېږي. د هغه په وینا، تر دې مهاله ورسره د شاوخوا ۲۱ میلیونه ونو د نیالولو او روزلو ژمنې شوې دي او زیاته یې کړه، چې که څه هم د چاپېریال په سمسورتیا او د هوا د ککړتیا د مخنیوي لپاره چټک او ډېر کار ته اړتیا ده خو په وینا یې، دا چې ملت له اقتصادي ستونزو او نظام له بندیزونو سره مخ دي نو «په تدریج به وړاندې ځو». د اقلیمي بدلون د بدو اثراتو د مخنیوي لپاره، چې ځنګلونه او شنې سیمې ساتل ګټور تمامېږي، د تېرو جګړو او ګډوډیو پر مهال د افغانستان ځنګلونه د ختمېدو له خطر سره مخ وو، خو د چاپېریال ساتنې ادارې مسلکي مرستیال زین العابدین وویل، چې دا ستونزه اوس ۹۰ سلنه هواره شوې ده. نوموړي ننۍ غونډې ته وویل، چې د شنو سیمو د زیاتوالي لپاره به په غزني او بلخ کې پلي کېدونکې پروژې نورو ولایتونو ته هم انتقال کړو. د چاپېریال ساتنې اداري چارواکو پر نړیوالو په ځانګړې توګه د اقلیمي بدلون له بدو پایلو سره د مبارزې پر اړوندو بنسټونو او صنعتي هېوادونو باندې غږ وکړ، چې په دې بشري پدیده کې دې لږ تر لږه له افغانستان سره سیاسي او دوه ګوني چلند نه کوي.     نذیر منیب

### د برښنا رسولو نوې ...

او د پلي کولو پر لارو کار کړي، چې ورسره به شته ستونزې حل شي.په ورته مهال د شنو صنایعو اړوند صنعتي کارخونو مسئولینو د افغانستان برښنا شرکت له رهبرۍ څخه د دوی ستونزو ته د پاملرنې په پار د منني ترڅنګ ژمنه کړې، چې خپله همکاري به له برښنا شرکت سره دوامداره وساتي.

### شیخ زاید پوهنتون ...

فارم کې د شنو خونو، اوبو رسونې، د څېړنیز فارم ودانۍ، د وترنري علومو د پوهنځي دلابراتوار د بیارغونې او د غوښتنو چرګانو د پالنې لپاره د مناسب ځای د جوړولو پروژې، د لوړو زده کړو وزارت له بودجې څخه د ۱.۳ میلیونو افغانیو په لګښت پیل شوې دي.نوموړي زیاته کړه، چې د یادو پروژو په بشپړېدو سره به د دغه پوهنتون محصلینو ته د عملي زده کړو په برخه کې زیاتې اسانتیاوې رامنځته شي.د یادونې وړ ده، چې د یاد پوهنتون د بېلابېلو پوهنځیو محصلینو د عملي زده کړو لپاره تدریسي روغتون، راډیو، حیواني کلینیک او څېړنیزفارم لري.

### د بهرنیو چارو ...

ښکېلتیا رامنځ ته کړي.د ناروې شارژدافېر په خپلو خبرو کې د افغانستان امنیتي وضعیت ښه او له نشه یي توکو سره د افغان حکومت مبارزه مؤثره وبلله او څرګنده یې کړه چې ناروې به له افغانستان سره خپلې ښکېلتیا ته دوام ورکړي او فعالیتونه به یې ادامه پیدا کړي.د ناستې په پای کې د مثبت تعامل پر اړتیا ګډ بحث او خبرې وشوې او د دواړو هېوادونو ترمنځ د ډیپلوماتیکو اړیکو لا پراختیا ته هیله مندي وښودل شوه.

### بامیانو کې د ۱۲۰ بستریز ...

ولایتونو کې سلګونه روغتونونه او روغتیایي مرکزونه جوړ او فعال شي. دا په داسې حال کې ده، چې لا هم په یو شمېر ولایتونو کې د لرې پرتو سیمو اوسېدونکي روغتیایي خدماتو ته له نهلاسرسي شکایت کوي او له حکومته غواړي چې دې برخې ته جدي پاملرنه وکړي.

### کابل کې د سرطان ...

روغتون تخنیکي مرستیال ډاکټر خالد احمد خالد وویل: اوس موږ اویا بستریز روغتون لرو چې خدمات وړاندې کوو اود ۲۵۰ بستریز روغتون د رغولو کارونه به پیل شي تر څو د سرطان اړوند د ټولو امراضو تشخیص او درملنه وشي، اوس په هېواد کې ۱۵۰ تر ۱۸۰ پورې مراجعین لرو چې کمو نفرو کې یاد مرض مثبت راوځي. د نوموړي په وینا دغه ناروغي د درملنې وړ ده؛ خو د پېژندنې لپاره یې پر وخت اقدام په کار دي چې وشي. همداشان د عامې روغتیا وزارت د ناروغیو د کنټرول لوی رئیس داکټر حیدر خان حیدر وویل: موږ کولای شو چې د ښو تدابیرو په نیولو سره د یادې ناروغۍ مخنیوي وکړو. سرطان ناروغۍ د درملنې وړ ده او د وقایوي تدابیرو پرمټ یې باید مخنیوي وکړو. تماکو نه کارول، متوازن خواړه خوړل او ورزش د هر ډول مرض په وړاندې حیاتي دي تر څو یې مخه ونیسو. که چېرته وقایوي تدابیر عملي نه شي، نو له لویې فاجعې سره به مخامخ شو. د روغتیا د نړیوال سازمان استازي ډاکټر دیلارا مینوال وویل: د سرطان ناروغۍ نړیواله ورځ لمانځل کېږي . یاده ناروغۍ یوه ستره ننګونه ده او هر کال د زیاترو وګړو ژوند اخلي، نو که لاس په کار نه شو ، راتلونکو څو کلونو کې به زیاته ګواښوونکي واوسي. افغانستان هم له دې زیاتېدونکي ناورین څخه په امن نه دي او د مخنیوي لپاره یې پرمختګ هم شوي دي.

همداشان په یادې ناروغۍ د اخته کسانو لپاره به په ولایتونو کې روغتیایي مرکزونه ولرو او په دې برنامه کې به د عامې روغتیا په همکارۍ تداوي، وسایل او د تشخیص وسایل ولري. د غریبو خلکو لپاره آسانتیاوې رامنځته کړې او له ولایتونو یې مرکز ته را انتقال کړو چې دا په خپله عامې روغتیا ته د پاملرنې کلک هوډ ښیي. عامه پوهاوي د یادې ناروغۍ په مخنیوي کې حیاتي رول لري او پر وړاندې به یې مبارزه په ګډه وکړو.     زیارمل هوتک

### کندز کې د یوې ...

د ورته نورو پروژو د پلي کېدو غوښتنه کړې ده.د یادونې وړ ده، چې په همدې ولسوالۍ کې د یوه چینایي شرکت په مالي ملاتړ د ۴۰ زره ډالرو په لګښت د یوه پله او د ۶۰ متره په اوږدوالي د یوه استنادي دېوال د جوړولو چارې پیل شوې، چې چارې به یې د یوې میاشتې په موده کې بشپړې او پرمټ به یې زر جریبه ځمکه خړوبه شي. باختر

### د خوست له مرکزي...

لګښت د یاد ولایت د پنجوايي ولسوالۍ په بدوان سیمه کې د اوبو رسولو د یوه کانال د رغولو چارې پیل شوې دي.د یادونې وړده، یاد کانال ۲۶۵ متره اوږدوالي، ۱.۵ متره پراخوالي او ۳ متره لوړوالي لري، چې چارې به یې په دوو میاشتو کې بشپړې او ګټې اخیستنې ته وسپارل شي. باختر

# Hewad Daily

سه شنبه د شعبان المعظم ۱۲مه ۱٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د سلواغې ۲۳مه د 2025 م کال د فبروري ۱۱ مه



د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: س ۲۵۲۶۳٤۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰٤٤۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳


# د کډوالو ستونزو ته د رسېدني کمېسیون غونډه کې د موظفو کمېټو کړنې و ارزول شوې



د کډوالو ستونزو ته د رسېدني عالي کمېسیون غونډه وړمه ورځ ناوخته د افغانستان د اسلامي امارت د ریاست الوزراء د اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي په مشري او د یاد کمېسیون د غړو په ګډون ترسره شوه.ارګ د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي ، چې په دې غونډه کې د کډوالو ستونزو ته د رسېدني عالي کمېسیون د موظفو کمېټو کړنې، اجراءات او لاسته راوړنې وارزول شوې.

پــه غونډه کې همدارنګــه د بېلابېلــو موضوعاتو لکه د کمېټو د کړنلارو، د زابل کډوالو او راستنو شویو ته د هغه ولایت د کډوالو ښارګوټي کې د ځمکې د وېش، د بېلابېلو ولایتونــو کډوالو تــه د ځمکې د وېش، لــه کابل څخه اړوندو ولایتونو ته د بې ځایه شــویو د لېږد او د ننګرهار ولایت بې ځایه شــویو سره د مرستو په اړه د احکامو او فرامینو د څارنې او تعقیب د لوي ریاســت د راپور په اړه بحث او هراړخیزه ارزونه ترسره شــوه او په اړه یې لازم تصمیمونه ونیول شول.

# بامیانو کې د ۱۲۰ بستریز روغتون د جوړولو چارې بشپړې شوې



د بامیانــو مســئولین وایي: په یــاد ولایت کــې د ٤۲ میلیونو امریکایــي ډالرو په لګښــت د «امام خمیني» ۱۲۰ بســتریز روغتــون د جوړولــو چارې بشپړې شــوې دي.د مسئولینو پــه وینا ، اوســمهال لــه ټولو طبــي تجهیزاتــو سره د «امام خمیني» روغتــون د جوړولو کارونه بشپړ شوي او په نږدې راتلونکي کې به ګټې اخیستنې تــه وســپارل او فعــال شي. د مسئولینو په وینا، دا روغتون د ایران پــه مالي ملاتــړ د ٤۲ میلیونو ډالرو په لګښت جوړ شــوی، چې په فعالېــدو سره به یــې د بامیانــو او ترخنګ ولایتونــو د ناروغانــو لپــاره روغتیایــي خدمــات وړاندې کــړي. د ویلــو ده ،چې دغه روغتون بــه د زړه جراحي او پیوند، پښتورګي، معدې، لید، عمومــي داخله، د ماشــومانو ناروغي او زېــږون په ګډون په بېلابېلو څانګو کې خدمات وړاندې کړي.له دې مخکې د اسلامي امارت د روغتیا وزارت ویلي و ،چې په نږدې راتونکي کې به په یو شمېر **۳مخ**

# د خوست له مرکزي زندان څخه ۱۸۳ بندیان آزاد شول



د کندهــار د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مســئولین وایي، چــې د یــاد ولایــت پــه پنجوایي ولســوالۍ کې د یوه کانال د رغولو چارې پیل شــوې دي.د یاد ولایت د کرنــې، اوبولګولــو او مالدارۍ ریاســت ویانــد محمــد حنیــف حقمــل وایي، چې د دغه ریاســت له پراختیایــي بودجې څخه د ۳.۸ میلیونه افغانیو په **۳مخ**

# کابل کې د سرطان د مخنیوي نړیواله ورځ ولمانځل شوه

د عامې روغتیــا وزارت له لوري د سرطــان ناروغــۍ چې موخه یــې عامــه پوهــاوی او ژغورل دي، ولمانځل شــوه چــې په دې اړه راټولــې شــوې غونډې ته په وینا کې د عامې روغتیا وزارت د روغتیایي خدمتونووړاندې کولو مرستیال مولوي عبدالولي حقاني وویــل: نننۍ غونــډه د سرطان ناروغــۍ د تشــخیص او عامــه پوهاوي پــه پار ده تــر څو یې پر وخت تشــخیص وشي. د دې ناروغۍ زیاتره عوامل چاپېریالي دي او کــم اقتصــاد لرونکــي کســان ترې زیانمن کېــږي. په دې ناروغــۍ په ټولــه نړۍ کې وخت ناوخت میلیونونه کسان اخته کېــږي چې لــه ځان سره زیاتره مړینــه هم لري. د سروې له مخې په افغانستان کې زیاتره سرطانونــه پــه ښــځو او زیات عمر لرونکو نارینه وو کې پیدا کېــږي. د سرطان د مخنیوي، ژر تشخیص او درملنې په موخه به د پالیسۍ له مخې یو روغتون جوړ




شي چې هر اړخیز طبي خدمتونه به وړاندې کړي، په دې روغتون کې به درملنه او تشخیص وشي، روغتیایــي خدمتونــو تــه به لا ښــه زمینه برابــره شي او بهرنیو هېوادونو ته بــه مو د هېوادوالو د تــګ مخــه ونیــول شي، نو د عامې روغتیا وزارت هڅه کوي چې یادو ناروغانو ته اسانتیاوې رامنځتــه کړي او لــه روغتیایي خدمتونو برخمن شي.

پــه ورته مهال د عامــې روغتیا وزارت د ســندونو، اړیکــو او د دفــتر لوي رئیس شــیخ محمد طاهر حلیم وویــل: نړیوال دي د افغانانــو روغتیایي برخو کې همــکار واوسي، ځکــه چې دا مرض د ټولو لپاره ګواښــوونکي دي چــې مخنیوي یــې وشي او پر وخت ورته رســېدنه وشي.د سرطان ناروغۍ **۳مخ**

# د هلمند له مرکزي زندان څخه ۱۵۲ بندیان آزاد شول

د عالیقدر امیرالمؤمنــین (حفظه‌الله ) د ځانګړي فرمان پر اســاس، د هلمند له مرکــزي زندان څخــه ۱۵۲ بندیان ازاد او د ۱۰۲ نــورو بندیانو د بند موده کمه شــوه.د یاد ولایــت د مرافعې محکمې رییس شــیخ مولــوي محمــد محمدي باخــتر اطلاعاتي آژانس تــه ویلي، چې د عالیقــدر امیرالمؤمنین حفظــه الله د ځانګړي فرمان پر اســاس، د هلمند له مرکــزي زندان څخــه ۱۵۲ بندیان ازاد او د ۱۰۲ نــورو بندیانو د بند موده کمه شــوه.په ورته وخت کې ازادو شــویو زندانیانــو د دې فرمــان هــرکلي وکړ او ویــې ویل چــې دغه اقــدام د دوی د اصــلاح او نــوي ژوند لپاره یو ښــه فرصت دي ترڅو خپلې تېروتنې جبران او سالم ژوند غوره کړي.

# کندز کې د یوې پروژې چارې پیل شوې

د کنــدز ولایت د دشــت ارچي ولســوالۍ د ښــاروالۍ مسئولین وایــي، چــې د دشــت ارچــي ولســوالۍ په ملاقلي بازار کې د ۲ میلیونــه افغانیو په لګښــت د ویالو د جوړولو چارې پیل شوې دي.د دشــت ارچــي ولســوالۍ ښــاروال ملا سیدالرحمن مجتبي وایي، چې د دغه ولایت د دشت ارچي ولســوالۍ په ملاقلي بازار کې د دشــت ارچي ښاروالۍ له بودجې څخه د ۲ میلیونه افغانیو په لګښــت د ویالــو د جوړولو چــارې پیل شــوې دي.نوموړې زیاته کــړې، چې یادې پروژوې چارې به د شپږو میاشتو په موده کې بشپړې شي، چې ورسره به د سیمې لســګونه کسانو ته د کار زمینه هم برابره شي.ورته مهال د یاد بازار هټیوالو د یادې پروژې په پــلي کېدو خوښــي ښــودلې او وایــي، چې د دغــې پروژې پــه بشــپړېدو سره به یــې ګڼې ستونزې حل او په راتلونکي کې یې له دولت څخه **۳مخ**




# د پوهنې او مالیې وزارتونو د همغږۍ غونډه وکړه

د پوهنــې وزارت د ودانیــو د ســاتنې، املاکو او مراقبت او د مالیــې وزارت د غیرمالیــاتي عوایــدو ریاســتونو اړونــد د عوایــدو د ګــډې کمېټــې د همغــږۍ غونــډه، د پوهنــې وزارت د سرچینــو او د اداري مرســتیال مولــوي صبغت الله وصیل، د مالیــې وزارت د غیر مالیــاتي عوایــدو د رئیس امان اللــه امین، د پوهنــې وزارت د ودانیــو د ســاتنې، املاکــو او مراقبــت رئیس مولوي ســمیع الحق حماس او د دواړو ادارو د یو شــمېر تخنیکي همکارانو په حضــور کې جوړه شــوې. غونډه کــې د پوهنې وزارت د عوایدو د ارزونــې او خدماتو وړانــدې کولو لپــاره د پوهنې او مالیې وزارتونو د ګډ پلاوي په تشکیل سره د امارتي املاکو د کړنــلارې چمتــو کولــو، د کانتینونو کرایې لپاره د لارښود پر برابرولو او د پوهنې وزارت د ودانیــو د ســاتنې، املاکو او مراقبت ریاســت لــه خوا پر وړاندیز شویو موضوعاتو هر اړخیــز بحثونه شــوي دي.په پلان کې ده، چې د دغې کمېټې په راتلونکو غونــډو کې به د اداري پروسو له مخې، د پورته ذکر شــویو مســایلو پر بنسټ کړنلاره چمتو او پلې شي.

# بهرني لنډ خبرونه

## د ترکیې ولسمشر :
# هېڅوک دا ځواک نه لري چې فلسطینیان له خپلې خاورې وباسي



د ترکیــې ولســمشر رجــب طیــب اردوغــان وړمــه ورځ پــه یــوه خــبري کنفرانــس کــې لــه غــزې څخــه د فلســطینیانو د ایســتلو پــه تــړاو د امریــکا د ولســمشر ډونالــډ ټرمــپ پــلان رد کــړی او ویــلي یــې دي، چــې هېڅــوک لــه دې ترانګــې فلســطینیان نــه‌شي ایســتلای. نومــوړي زیاتــه کــړې، هېڅــوک دا ځــواک نــه لــري، چــې د غــزې ولــس د هغــوی لــه ټاټــوبي وبــاسي. ښــاغلي اردوغــان ټینــګار کــړی، چــې غــزه، لوېدیځــه غــاړه او ختیځ بیت المقــدس پــه فلســطینیانو پــورې اړه لري.لــه اردوغانــه وړانــدې د یــو شمېر عربي هېوادونــو چارواکــو هــم لــه غــزې څخــه د فلســطینیانو بــې ځایــه کیــدل رد کــړي وو.د امریــکا ولســمشر ډونالــډ ټرمــپ د روانــې فــبروري میاشــتې پــه څلورمــه نېټــه د اسرائیلــو لــه لومــړي وزیــر بنیامــین نتانیاهــو سره پــه ګــډه خــبري کنفرانــس کــې ویــلي و، چــې ښــایي امریــکا د غــزې کنټــرول ترلاســه کــړي او اوســېدونکي **۳مــخ**

# ایلان ماسک د آزادۍ اروپا، آزادۍ او امریکا غږ راډیوګانو د بندېدو غوښتنه کړې




د ټکنالــوژۍ متشــبث او د نــړۍ مشــهور میلیــاردر ایلان ماســک د ازادۍ اروپا، ازادۍ او امریــکا غــږ راډیوګانــو د بندېــدو غوښــتنه کــړې ده.نومــوړي ویــلي، چــې د آزادۍ او امریــکا غــږ راډیوګانــې اورېدونکــي نــه لــري او بایــد وتــړل شي.ایلان ماســک ادعــا کــړې، چــې دغــه اداري بې ګټــې دي او د امریــکا د مالیــه ورکوونکــو پیســې ضایــع کوي.ماســک پــر خپلــه ایکــس پاڼــه لیــکلي، چــې د دې راډیوګانو پــه وســیله د امریــکا یــو میلیــارد ډالــره ضایــع کېــږي.د نومــوړي وروســتیو څرګندونــو پــه امریــکا کــې پــراخ بحثونــه راپورتــه کــړي. ځینــې خلــک د بودیجــې پــه اړه د نومــوړي نیوکــې تأییــدوي او ځینــې نــور یــې بیــا **۳مــخ**

# لیبیا کې ډله‌ییز قبر؛ د ۵۰ تنو جسدونه موندل شوي



لیبیــا کې چارواکي وایــي ،چې د یــاد هېــواد پــه ســوېلختیځ کــې پــه دوو ډله‌ییــزو قبرونــو کــې ۵۰ جســدونه موندل شــوي دي.ویــل کېــږي، یــادو کســانو غوښــتل ،چــې د شمالي افریقــا لــه هېوادونــو څخــه اروپــا تــه ځانونــه ورســوي.د لیبیــا امنیتــي چارواکــو رســنیو تــه ویــلي، لومــړي ډله‌ییــز قبر چــې ســوېلختیځ ښــار کوفــرا کــې مونــدل شــوي، پــه‌کــې د ۱۹ کســانو جســدونه پیــدا شــوي دي.یــوه امنیتــي چارواکــي محمدالفدیــل وویــل، دویم ډلــه ییــز قبــر هــم پــه یــاد ښــار کــې مونــدل شــوی، چــې پــه‌کــې لــږ تــر لــږه ۳۰ جســدونه **۳مــخ**